بسم الله الرحمن الرحیم

# د شلمي میلادي پیړۍ مجدد

لیکوال: نوراحمد قران مل

## لنډیز

د سید جمال الدین افغان ژوند په یو کس پوري محدود نه وو، چې موږ ته دهغه دشخصیت کره وړه وښوي، بلکې د هغه شخصیت داسې یو ډول وو، چې د غربي فرهنگي استعمار په وړاندې د شرقي نهضت دراپیداری منطق له سره را پیل کول وه ځکه، نو ویلای سو چې سید جمالدین افغان (رح) دخپل عصر یو نابغه نه، بلکې د خدای په ورکړي استعداد داسې یو څوک وو، چې په معاصره شلمه پیړۍ کې یې دبشري ویښتابه او توحید دمفکورې د پلي کولو بیا احیا مجدد بللای سو.

# د شلمي میلادي پیړۍ مجدد

په اسلامي تر مینالوژي کې د تجدد خبري ته داسې روښانه دي چې د بیا احیا ټکي نسته، ځکه چې اساسات او اصولو یې ټول داسماني وحیو څخه داسې سرچینه اخیستې چې د مځکې پر مخ دبشریت دنظم ، سعادت او پرمختگ دایمي ضمانت ورکړي، ولې د معاصر اسلام په یوه نه بیلیدونکې برخه تصوفو کې داسې یوه اصطلاح سته چې هغې ته د تجدد یا تجدید نوم ورکوي، کیدای سي په یوه پیړۍ او یا زریزه کې موږ د بیلگې په توگه یادي کړو، چې په زریزه کې کي یې کره مثال د (مجددالف الثاني) یا تر زرو کلونو وروسته بیا داسلام تجدیدونکئ.

کله چې موږ پورته خبري په کتو گورو نو بیا ښوولای سو چې افغان سیدجمال الدین په شلمه پېړۍ کې دسیاسي نوښت تر څنگ په اسلامي برخه کې دیوه داسې نضهت را زیږوونکئ وو چې د نړیوال سیاسي امپراطوریک جال په لمنه کې د نړیوالو ملتونو د غلامۍ دلاري خلاصون په مسلم قیام پوري نه دي معلق، بلکې اړتیا ده چې نړیوال مسلمان نهضتونه په خپل نوښت د سیاسي ځراکت د مکتب پیروي وکړي او په خپل دراید سره اسلامي نړۍ دمعاصر نا منظم حالت څخه داسې وژغوري چې دصدر اسلام د دورې مجد یې د معاصرې ټکنولوژۍ په استعمال سره ژوندي او د مځکې پر مخ دنیکمرغه انساني ژوندانه تضمین کړي. دنوموړي د دې ادعا پر بنسټ د (ندای سید جمال الدین افغان) لیکوال ښاغلي په خپل کښل سوي اثر کې کاږي چې (سید جهاد را باشمشیر ترک گفته درحالکه اجدادش باشمشیر جهاد میکرد و او در آخر بالسان د قلم جهاد میکرد)[i] دا خبره ددې مصداق ده چې سید صاحب په اسلامي نړي دیوه نوي سیاسي مجد درا پیدا کېدو هدف درلود او دایی طرحه وه چې دمسلح قیام تر څنگ د ژبني مهارت او وینا اړتیا هم سته.

### سید او درباریان

سید صاحب دخپل ژوندانه په پیچومو کې دمعاصرو درباري ننگونو سره مخ سو. دهغه ځراکت دلته د منني وړ دی چې دخپلي فکري ازادۍ په څرگندولو سره داسې استلالات او منطقي دلایل ولري چې د هر درباري واکمن له درباري ژوند ځان خپلواک او ژوندی وباسي.

هغه دوخت افغان واکمن ته دا ډاډ ورکړ چې زما په موجودیت کې به له انگلیس سره په جنگ کي را ښکلېږې او یا به زما په تبعید کي خپل پاچهی ته دوام ورکوې.

سید صاحب دایران شاهي پهلوي دربار هم ونه زغمای سوای، خو داده سید هنر وو چي په څه ډول يې هغوی دخپل تبعید په منظور جوړ او ترکیې ته ځیني ولاړ.

سید داسلامي خلافت خلیفه سلطان عبدالحمید ته هم د ایران د واکمن ته دبخښني[ii] کلمات وارول او هغه یې په دې قانع کړ داسلام په خپراوي کې د شاهي دربارونو د واکمنو باک نه لري.

**په اروپا کي د سید بیداروونکئ نهضت او (العروة الوثقی)**

د شړم فردیناند او ازابیلا د پوځي برید او سطان ابوعبدالله د نظام په سقوط غرناطې داسلامي سقوط وروستی سلگۍ ووهلې، تر هغه وروسته په اروپا په ځانگړي ډول هسپانیه کي نوره موډرنه اسلام واکداري تر درو څلورو پېړیو پوري د برم او پرتمه ولوېده. فرانسې ته په تگ سید جمال الدین افغان (رح) العروة الوثقی[iii] مجلې په خپریدو د شرقي او اسلامي ویښتابه بیرغ یوځل بیا د اروپا پر منارونو ورپاوه او په اروپا کي یې د اسلامي یو بله نوې معنوي پانگونه وکړه. دهغه دې کړني نه یوازي دلته، بلکي د اروپا سر بیره دافریقا په مصر کي دنهضت په را منځته کیدو د میسینرانو په وړاندي ځوانان را ویښ او دخپلو افکارو ترجمانان د امام حسن البنا او محمد عبده[iv] غوندي نهالان را و روزل.

ای کاش چي!

دمعاصري نړیوالي گډوډۍاو سیاسي بې اندولۍ له پاره هغه بې نبوته مسیحا ژوندی وای.

په درنښت

دعلامه حبیبي کتابتون عمومي مدیریت

۱۳۹۷کب۱۴

[i] وگ:ندای سیدجمال الدین افغاني(۱۰)مخ ،دمحمود ابوریه اثر، دری ته ژباړن(بشار) داطلاعاتو کلتور وزارت ۱۳۵۵ل کال.

[ii] وگ:ندای سیدجمال الدین افغاني(۲۴)مخ ،دمحمود ابوریه اثر، دری ته ژباړن(بشار) داطلاعاتو کلتور وزارت ۱۳۵۵ل کال.

[iii] پیشرفت اعجاب انگیز وانحطاط مسلمین(۲۲۹) صفحه لیکوال ډاکټر خلیل مومند،پښتوژباړه نوراحمد قران مل

[iv] وگ:ندای سیدجمال الدین افغاني(٦)مخ ،دمحمود ابوریه اثر، دری ته ژباړن(بشار) داطلاعاتو کلتور وزارت ۱۳۵۵ل کال.